# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۹۱ ګڼه / دوشنبه ۲۵ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ٦مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۲٤ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## د ملا برادر په مشرۍ افغان پلاوی له بریالي سفر وروسته هېواد ته راستون شو

د ریاست الوزراء اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر اخوند په مشرۍ یو پلاوی بېرته کابل ته راستون شوی دی.

ملا عبدالغني برادر اخوند ازبیکستان ته خپل سفر له لاسته راوړنو ډک بولي او زیاتوي چې دې سفر کې یې د افغان سوداګرو د ستونزو د هوارۍ




په موخه ګټورې غونډې درلودې.

دا په داسې حال ده چې، د ریاست الـوزرا اقتصادي مرستیال، ملا عبدالغني برادر اخوند په مشرۍ پلاوی تېره ورځ په دوه ورځني رسمي سفر ازبیکستان تللی و. دې سفر کې د اوسنۍ کابینې ګڼ سرپرست وزیران شامل وو.

مولوي ذبیح‌الله مجاهد:

# د غنیمت په وسلو له دین، هېواد او خپلواکۍ دفاع کوو



د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد د ایکس په یوه سپېس بحث کې ویلي و چې له امریکایانو پاتې وسلې غنیمت دي او له دې وسلو به د دین، هېواد او خپلواکۍ په ساتلو کې کار اخلي.

نوموړي ویلي چې یادې وسلې اوس د افغانانو ملکیت دی او په امریکایانو پورې تړاو نه لري.

بلخوا، د امریکا ولسمشر ډونالډ ترمپ هیله ښودلې چې دوی به په کلني ډول د دوه نیمو میلیاردو نغدي ډالرو په بدل کې افغانستان کې نیول شوې غنیمت وسله بېرته واشنګټن ته وسپاري. ۳مخ

## گسترش همکاری‌های بانکی میان افغانستان و ازبیکستان



مولوی نور احمد آغا، رئیس کل بانک مرکزی افغانستان در جریان سفر به ازبیکستان با تیمور اشمتوف، همتای ازبیکستانی‌اش دیدار کرد.

بربنیاد خبرنامه، در این دیدار در مورد توسعه همکاری‌های دوجانبه، ایجاد سهولت‌ها در انتقالات بانکی، ظرفیت‌سازی، استفاده از پول‌های ملی و رایج دو کشور در تعاملات تجاری، اتصال و توسعه سیستم‌های پرداخت، گفت‌وگو شده است.

در خبرنامه به نقل از رئیس کل بانک مرکزی آمده که گسترش روابط بانکی میان کابل و تاشکند را زمینه‌ساز رشد بیشتر روابط تجارتی دانسته است. ص۳

## وزارت زراعت امسال ۱۶ میلیون اصله نهال در کشور غرس می‌کند



مقام‌های وزارت زراعت، آبیاری و مالداری می‌گویند، قرار است امسال ۱۶ میلیون اصله نهال از سوی این وزارت در سراسر کشور غرس شود.

عبدالاحد خلیل کریم، رئیس عمومی منابع طبیعی وزارت زراعت، آبیاری و مالداری این مطلب را در مراسمی در بادام‌باغ کابل بیان کرد. ص۳

## بازدید از اداره تحقیقاتی و نشراتی عروج در هرات




مولوی احمدالله متقی رئیس اطلاعات و فرهنگ هرات در این دیدار از بخش های مهم اداره عروج از جمله تالیف و ترجمه، نشرات، بخش رسانه‌ای و اکادمی علوم عصری نخبگان عروج دیدن نموده و تاکید برحمایت همه جانبه از این مرکز علمی فرهنگی نمود. ص۳

## سرمقاله

## آفتاب به دو انگشت پنهان نخواهد شد

درپی اظهارات بنیامین نتانیاهو نخست وزیر رژیم صهیونیستی که در آن تأکید کرده بود هرتوافقی درباره غزه در آینده باید شامل برچیدن زیرساخت‌های نظامی حماس و جلوگیری از کنترول این منطقه توسط تشکیلات خود گردان فلسطین باشد، حماس این شرط را رد کرده است.

حازم قاسم سخنگوی جنبش آزادی بخش حماس به تعقیب این اظهارات در بیانیه‌یی اعلام کرده که شرط رژیم صهیونیستی برای حذف حماس از غزه، یک جنگ روانی است و تأکید کرد که این سازمان خروج از غزه یا خلع سلاح خود را درهیچ توافقی نخواهد پذیرفت.

قاسم علاوه کرده که شرط رژیم صهیونیستی برای حذف حماس از غزه یک جنگ روانی بیهوده است و خروج مقاومت یا خلع سلاح آن در غزه غیر قابل قبول است، همچنان وی خاطر نشان ساخته که حماس از نظر سیاسی و میدانی آماده اجرای مراحل دوم وسوم توافق آتش بس است.

این اظهارات در حالی بیان می‌شود که اخیراً دونالد ترامپ رئیس جمهور امریکا نیز از خرید غزه وانتقال ساکنان آن به مصر، لبنان و دیگر کشورهای منطقه سخن گفته بود.

حالا پرسشی مطرح می‌گردد که این انسان‌های روانی با کدام صلاحیت به خود اجازه می‌دهند برای سرنوشت و آینده مردمی که به خاطر آزادی و استقلال سرزمین خود بیش از ۴۶ هزار شهید و۱۰۹ هزار زخمی داده است وغزه نیز کاملاً تخریب شده است، خط و نشان ترسیم کنند. آیا این جنابان چه فکر می‌کنند که دنیا و مافیایش همه در اختیار این‌ها است که بدون شک قدرتی حقیقی و صاحب این کره خاکی وکاینات ، او تعالی است، آیا این جنگ افروزان از حوادث اخیر در تکزاس ایالات متحده امریکا پند نگرفتند که درمهار آتش سوزی قادر به هیچ کاری نشدند، هرچند که در پی آتش سوزی تکزاس در نخست احتمالاً دست‌های پنهانی وجود داشته، اما سرعت و گسترش این آتش سوزی چنان گسترش وغیر قابل کنترول بود که تکزاس در ظرف چند هفته مانند نوار غزه به خاک و خاکستر تبدیل گردید که ... ص۳

د عامې روغتیا وزارت:

## دناسالمو خوړو د باکیفیته کولو لپاره پر یو سیستم کار کوو



شریعت: کابل ښاریان د ښار له ناسالمو خوړو شکایت کوي او وایي چې دوی یې له روغتیایي اندېښنو سره مخ کړي دي.

دوی له حکومته غواړي چې دغه برخې ته ځانګړې پاملرنه وکړي، تر څو روغتیا یې تضمین شي.

بلخوا د عامې روغتیا وزارت وایي چې د غیرخوندي خوړو د مخنیوي لپاره په یو سیستم کار کوي، چې له مخې... ۳مخ

## له کندهار څخه ۶۲ زره ټنه وچه مېوه صادره شوې



د کندهار د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولین وايي، چې د روان کال په ترځ کې له دغه ولایت څخه بهرنیو هېوادونو ته ۶۲ زره ۳۱۰ ټنه وچه مېوه صادره شوې ده. د یادې خونې مرستیال انجنیر عبدالباقي بینا ویلي، چې د دغو صادراتو ټول ارزښت ۲۴۴ میلیونه، ۶۱۱ زره او ۴۰۶ امریکایي ډالرو ته رسېږي، چې هند، پاکستان، عربي متحده اماراتو او امریکا ته استول شوې دي. نوموړي زیاته کړه، چې د صادراتو ډېره برخه انځر، شکرپاره او ممیز جوړوي.

د کندهار د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولینو ویلي، چې هند ته د افغانستان د وچو مېوو پر صادراتو هېڅ ډول مالیه نه اخیستل کېږي.

## تېره میاشت ۲۷۰ زره برښنايي پېژندپاڼې وېشل شوې

د احصایې او معلوماتو ملي ادارې د شمېرو له مخې د روان ۱۴۰۳ کال په سلواغې میاشت کې د ټول هېواد په کچه ۲۷۰ زره برښنايي پېژندپاڼې وېشل شوي دي.

د دې ادارې د برښنايي پېژندپاڼو د ریاست د ارقامو له مخې، په کابل کې ۵۸ زره او ۵۴۰، په کندهار کې ۲۲ زره او ۸۳۹، په هرات کې ۲۲ زره او ۱۱۵، بلخ کې ۱۴ زره او ۳۹۵ او هلمند ولایت کې ۱۲ زره او ۶۸۳ برښنايي پېژندپاڼې وېشل شوې دي. ۳مخ




صفحه ۲

نقش سرسبزی در پاک نگهداشتن محیط زیست

۲ مخ

۳۶۰ خبرې

شهوت ۸۱ یمه خبره- شهوت فقط مهار او نظارت غواړي؛ ځکه چې هغه پوهول...

۲ مخ

د امریکا د پرمختیایي مرستو اداره او پر بین‌المللي سیاست یې اغېزې!

# نقش‌سرسبزی درپاک‌نگهداشتن محیط‌زیست

**نوری**

هـر هموطن ما با غرس یـک اصله نهال می‌تواند محیـط و ماحول خودرا پاک و سرسـبز نگهدارد. با این عمل صحت و سـلامتی خود و دیگر افراد نزدیک خودرا از خطرات گازهای مضر که در اطراف و اکناف ما به وفور دیده می‌شود جلوگیری کـرد. در جایی که انبـوه درختان وجود دارد مردم آن منطقـه از خطرات گازهای خطرناک که برای صحت انسـان خیلی مضر اسـت مصون می‌شـوند. با تأسف فـراوان که باغات، زمین‌های زراعتی نه تنها در کابل؛ بلکه در سـایر ولایت‌ها در مقابل یک مقدار پول فروخته می‌شـود و در آن به ساختن خانه‌های رهایشی اقدام می‌شود. با این کار به محیط زیست خود آسیب می‌رسانیم. درخت‌ها هوای آلوده را تصفیه کرده و مقدار زیاد آکسـیجن را فراهم می‌سـازد. از جانب دیگر درختان منبع خوبی میوه جات اسـت که انسان‌ها از آن اسـتفاده می‌کنند و همین‌گونه از سـایه درختان تابستان که هوا بسـیار گرم و غیر قابل تحمل می‌شود نیز استفاده به عمل می‌آید. مسـئولین محیط زیسـت ما وظیفه دارند که به این مشکل رسیدگی کننـد. از قطع کردن درختان و جنگلات باید جلوگیری به عمل آید. با وجود اینکه امارت اسـلامی تا حدودی از قطع کردن درختان و جنگلات جلوگیری کرده‌اند؛ اما با آن‌هم این مشـکل در بعضی از نقاط کشـور وجـود دارد. امروز، اهمیت درختان در طبیعت بر کسـی پوشیده نیست. همه ما می‌دانیم که درختان می‌توانند محیط اطراف ما را سرسبزتر و زیباتر کنند و به پاک‌شدن هوا کمک کنند و نیازهای تولید چـوب مرغوب و میوه‌های خوش‌مزه و خوش‌آب‌ورنـگ را برای ما برآورده سـازند. برخی از اقسـام درختان با هدف تولید چوب باکیفیت و سـپس ساخت مصنوعـات چوبی و برخی دیگر از انواع ازجمله درختان میوه و درختان همیشـه سـبز با هدف پاکی محیط زیست و تولید میوه‌ها در باغات غرس می‌شوند. غرس درخت‌ها یکی از فرهنگ‌های ملی ما اسـت و در عقاید اسلامی ما نیز ریشه دارد. درختان، ازجمله جانداران روی کره زمین محسـوب می‌شـوند که در طول تاریخ تکامـل یافته‌اند؛ همان‌طورکـه همه جانوران در دوره‌های مختلف زمین‌شناسـی تکامل پیدا کرده‌اند. باسـتان شناسـان گفته اند گیاهان اولیـه و درختان بزرگ و غول‌پیکـر در دوران ماقبل تاریخ، همچنان اولین موجـودات روی زمین بوده‌اند و به تدریج بـه منبع غذایی جانوران گیاه‌خوار تبدیل شـدند. امروز، هم درختان تکامل یافته امروزی، استفاده‌های فراوانی برای ما دارند. به باور متخصصان امور زراعت«اهمیت وجود درختان در طبیعت به‌اندازه‌ای اسـت که به‌جرئت می‌توانیم بگوییـم که نبود آن‌هـا می‌تواند حتی باعـث نابودی و انقـراض برخی از انواع جانوران شـود. برای مثال، انواع سـنجاب در تنه درختان زندگی می‌کنند. زندگی بسـیاری از پرندگان به درختان وابسـته اسـت و با قطع بی‌رویه درختان جنگل، چیـزی جز نابودی این زیسـتگاه‌ها عاید طبیعت نمی‌شـود!» افـرادی که دانش اندکی درباره محیط زیسـت دارند، می‌توانند درک کنند اگر جنگل‌های کشـور از بیـن بروند، چه اتفاق ناگـواری می‌افتد! جنگل‌ها مانند سیسـتم تصفیه هوا عمل می‌کننـد و می‌توانند حجـم زیادی از گاز دی‌اکسـایدکاربن را جذب و از پدیده گرم‌شـدن زمین جلوگیری کنند. گرم‌شـدن زمین به پدیده‌های بسیار وحشتناکی روی سـیاره زمین منجـر خواهد شـد؛ مثلاً یخ‌هـای قطبی آب خواهند شـد، سـونامی‌ها و طوفان‌های دریایی سهمگین رخ خواهد داد، تغییرات درجه حرارت شـدید در تابستان‌ها و زمستان‌ها اتفاق خواهد افتاد و جان انسان‌ها تهدید خواهد شد. مسلم اسـت که وجود درختان در جنگل‌ها می‌تواند این خطرها را به حداقل برسـاند. کار شناسـان زیسـت محیطی به مصئون ماندن جنگلات و درختان از خطرات قطع شدن و نابودی بسیار تـأکید کرده اند. درختان در خاک ریشه دارند و به تبادل عناصر مغذی خاک و حفظ این بسـتر بسـیار کمـک می‌کنند. حجم زیادی آب به اَشـکال مختلف میان ریشـه‌ها و خاک مبادله می‌شود. اگر درختان جنگل از بین بروند، خاک به مرور زمان فرسـوده‌تر می‌شود و مواد مغذی خود را از دسـت می‌دهد و طولی نمی‌کشد که آن جنگل سرسبز و تماشایی به صحراهای سـوزان و بی‌ثمر تبدیل خواهد شد؛ البته ما این را نمی‌خواهیم. همین‌طور سایکل آب به اختصار عبارت اسـت از تبدیل آب مایع به بخار آب و سپس تبدیل مجدد آن بـه مایع. این همان پدیده‌های فیزیکی اسـت که هنـگام بارش باران و برف و سـپس بخارشدن آب از سطح زمین با آن سـروکار داریم. جنگل‌ها به‌طورطبیعی محیط هایی مرطوب هسـتند و اگر بارندگی بسـیار اتفـاق بیفتد، حجم رطوبت بسـیار افزایش پیدا می‌کند و بخار آب به جو زمین انتقال می‌شود و بسیاری از آب بارندگـی می‌تواند به ذخیره آب زیر زمینی نفـوذ کند. این روند در هوا و خاک و زیر زمین ادامه دارد تا منابع آب طبیعی زمین تأمین شـود. با ازبین‌رفتن جنگل‌ها و درختان اختلال شـدیدی در سـایکل آب به‌وجود می‌آید. نظریه‌ای ثابت شده اسـت که وجود درختان جنگل می‌تواند گرمـای زمین را کاهش دهند. این همان کاهش گرمایش زمین و اثرهای گلخانه‌ای جو زمین اسـت. در شـهر کابل هوا به اندازه‌ی آلوده اسـت که هنـگام پیاده رفتن و تنفس هوا متوجه می‌شـویم. هنگام شـب که از خانه بیرون شـویم و یا فضا را تماشـا کنیم هوا بسـیار برای ما آلوده معلوم میشـود، که دود های متصاعد شده باعث آلودگی هوا می‌شود. هر هموطن مـا وظیفـه دارد که به خاطر جلوگیـری از آلودگی هوا و پاک نگهداشـتن محیط زیست خویش قبل از فرا رسـیدن بهار یک یک اصله نهال را غرس کنند که بیشتر از این محیط زیسـت ما آلوده نشود. وزارت زراعت، آبیاری و مالداری همین‌گونه شـاروالی کابل به همکاری مردم وظیفه دارند که کمپاین‌هـای تبلیغاتی را جهت غـرس نهال و نگهداری آن به راه اندازند، تا آنان کـه اهمیت درختان و جنگلات را نمی‌دانند آگاه شـوند. هر دو اداره همه سـاله کمپاین‌های گسترده را برای نهال شـانی به راه می‌اندازند؛ اما هنوز هم مشـکلات بر سر راه است که با راهکارهای جامـع حل شـده می‌تواند. بدینوسـیله صاحب یک محیط زیسـت پاک و آب و هوای گوارا خواهیم شد.

# د امریکا د پرمختیايي مرستو اداره او پـر بيـن‌المللي سـياست يـې اغيــزې!

**ثناءالله عمران / دویمه او وروستۍ برخه**

د امریکا په پرمختیايي اداره کې له بدلون څخه د ټرمپ موخې

د USAID پـر وړانـدې د ټرمپ ادارې کړنې د متحده ایالاتو په بهرني سیاسـت کې بدلون په نښـه کوي، خو تر څنګ يې د امریکايي ماډل محدودیتونه هم واضح کوي. په USAIDکـې د ټرمپ ادارې اصلاحـات د هغـې د ناکنټرول شـوي ځواک د مخنیـوي په موخه یـوه پرېکړه کونکې هڅه پـه ګوته کوي. د USAID په اړه د ټرمپ کرکـه د هغې د بې کفایتۍ او د اداري پړسـوب له املـه ده، چې د خپلې پالیسـۍ د پام وړ پایلو ترلاسه کولو په پرتله خپلې بقا تـه لومړیتوب ورکوي. ویـل کېږي چې پـه دې اصلاحاتو کې د پرسونل بدلون، د ډیپلوماټانو لخوا د څار زیاتوالـی، د بودجې کمـول او د ټرمپ د وفـادارو چارواکو ځای پـر ځای کول شامل دي.

همدارنګـه د ټرمپ ټیـم د USAID د کار په اړه او دا چـې د امریکا د ملي ګټو خوندیتـوب لپاره څومره حیاتي ده، ښـه پوهېږي خو ویل کېږي چې د ټرمپ نوې اداره پـه پام کې لري یـاده خپلواکه اداره د بهرنیو چارو وزارت تـر کنټرول لاندې راولـي.د بهرنیو چارو وزیـر مارکو روبیو ویلي دا چاره د دې لپاه ترسـره کېږي څو اداره د امریـکا له لومړیتوبونو سـره عیار او برابره شـي. هغه زیاتوي چې د هر ډالر لګښـت باید د داسې شـواهدو بر بنسټ توجیه شـي چې امریکا لا ډېره خوندي، پیـاوړې او سـوکاله کوي.خپلـه ټرمپ هـم ویلي چې غواړي بهرني لګښـتونه د امریکا له لیدلوري سره همغږي شي.

همدا ډول ایلن ماسـک پر ایکس ټولنیزه شـبکه چې دی یـې مالـک دی، په یوه خپـاره کړي پیغام کې USAID شـریر، جنایتـکار سـازمان او د راډیکالـو کیڼ اړخو سیاسي رواني وسـیله بللې. د هغه په خبره د هغـې د مړینې وخت دی او د تعمیر وړه نه ده. لـه همدې امله نوموړي ویلي چې د ټرمپ حکومت د دې ادارې لـه ترلو سـره هوکړه لـري او باید وتړل شـي. په خپلـه ټرمپ هم ویلـي چې دا اداره د راډیکاله کیڼ اړخـه لیونیانو لخوا پر مخ وړل کېږي او ستړې درغلۍ په کې شوي. دې مسـئلې په متحدو ایالتونو کې یوه سیاسي شـخړه او نوره نړۍ کې پراخ بحثونه راپورته کړي دي.

د USAID د ترلـو په اړه د ټرمپ ادارې پرېکـړه د کانګرس د ډیموکراټانو له پراخه نیوکو سـره مخ شـوې. هغوی ادعا کړې چې ټرمـپ قانوني واک نـه لري چې د کانګـرس لخـوا تمویل شـوې خپلواکه اداره له منځه یوسـي. دوی ویلي وو چې د محکمې لـه لوري ننګونکي اقدامات لا د مخه پیل شـوي خو په خپلـه هغه ژمنه کې پاتې راغلـل چې څو د ادارې تعطلي نه وي لغوه شـوې د ټرمپ د بهرنیو چارو وزارت نوماند د تائید مخه به ډب کړي. نظرپوښتنې له اوږدې مودې راهیسې دا په ډاګه کوي چـې امریکايي رأیه ورکوونکي د بهرنیو مرسـتو لګښـتونو د کمولو ملاتړ کوي، نو د دې ادارې لغوه کول ښايي عام ملاتړ ترلاسه کړي.

**چین او روسـيې تـه د نفـوذ پراختیا زمینې برابرېدل**

پـه ۱۹۶۱ ز کال کـې د USAID لـه رامنځتـه کېدو څخه وړاندې بنسـټونو او له هغه وروسـته په خپلـه دغې ادارې د کمونېزم خپرېدو پـه مخنیوي کې پیاوړی رول لوبولـی دی. اندریـو ناټسـیوس د USAID پخوانی مدیر، په ۲۰۲۰ ز کال کې لیکلي وو چې دې ادارې له شـوروي اتحاد سـره د سـړې جګـړې پرمهال د متحـده ایالاتو پـه بریالیتـوب کې خورا مرسته وکړه.

پـه ۱۹۹۱ز کال کې د پخواني شـوروي اتحـاد لـه ړنګېـدو او د سـړې جګړې پـه پای ته رسـېدو سـره نړیـوال نظم د امریـکا په مشـرۍ یو قطبي شـو نو دغه مهـال USAID د امریـکا د بهرنـي سیاسـت د یـوې کاریګرې وسـیلې په توګـه د (Globalization)نړیوالتـوب تـر سـرپوښ لانـدې د غربـي کولو او امریکایتوب لپاره په کار بوخته شوه.

دا چـې نړۍ له یـو قطبیتوب وروسـته د ګـڼ قطبیتـوب حالت کې قـرار لري، د ټرمپ د دویم ځلي ولسمشـر کېدو سره د هغه د یو شـمېر سیاسـتونو لـه امله په ډله‌ییـز غرب کې خپـل منځي درځونه د پراخېدو په درشـل کـې دي.د امریکا په مشرۍ د پاشـلي غرب په وړاندې د نړۍ په کچه روسـیه او چین پیاوړي سـیالان او لوبغـاړي ګڼـل کېږي، نـو له همدې امله USAID د روسـيې او چین د نفوذ پراختیـا پـه مخنیـوي کې د هغـوی پر وړاندې پـه بېلابېلو ډګرونو کې فعاله ده.

پـه هرصـورت، ډېـری ویره لـري چې د متحـده ایالاتو د پیسـو بندیـدل به د واشـنګټن متحدینو ته زیان ورسـوي او داسـې خلا به رامنځته کړي چې دښمنان به یې په خوښـۍ سـره د ډک کولو په لټه کې وي.

د سـناتور کونـز پـه خبـره د پرمختیايي ادارې ترنه بـه د نړۍ په کچـه د امریکا رهبري ته زیـان واړوي او د چین نفوذ ته لار پرانیسـتې پرېږدي چې دا به یوه لویه تېروتنه وي.

USAID په هغو هېوادونو کې د تبلیغاتي او یو شمېر نورو پروژو ملاتړ کوي چیرې چې روسـیه په کې لوی نفـوذ لري او یا هم د دوی سـره یې مناسبات سم نه وي، لکه جورجیا،ارمنسـتان، افغانسـتان او داسـې نور. همدا تېر کال یې په ارمنستان کـې د یو شـمېر پروګرامونـو څخه خپل ملاتـړ چټک کړ څو لومـړی وزیر نیکول پاشـینیان حکومت دې تـه وهڅوي چې له روسيې سـره اړیکې سړې او له متحده ایالاتو او اروپايي ټولنې سـره یې پیاوړې کړي.

دا چـې له ۲۰۱۳ زکال راهیسـې چین په اسـیا، افریقا، اروپا او لاتیني امریکا کې بنسـټیزو پروژو تـه له یـو ټریلیون ډالرو څخه ډېري پیسې ځانګړي کړي،نو تر بل هر وخت دا مهال د نړۍ په کچه بیجینګ تـه د نفوذ کولـو فرصـت برابرېږي او د امریکايي مرسـتو بندول به د نرم ځواک پـه جګړه کې د چین لپاره یوه ډالۍ وي.

همدارنګـه دا مهـال چین او روسـیه د امریـکا متحده ایالاتـو او اروپايي ټولنې څخه په مخکښ کېدو سـره د افریقا لپاره په لویـو تجارتـي، نظامي ملګـرو او د پانګونې په سرچینو اوښتي دي.

**د امریکا پرمختیايي اداره او افغانستان**

USAID په افغانسـتان کې له ۲۰۰۲ ز کال راهیسـې د امریکايي اشغال سره هم مهاله خپـل حضور په بېـلا بېلو ډګرونو کې په تدریجـي ډول پیاوړی کړ. د هغې هڅـې په ۲۰۲۱ز کال کې له افغانسـتان د اشـغالګرو قوتونو له ایسـتلو وروسـته او د ا.ا.ا. تـر ملاحظاتو وروسـته د خپلو پالیسـیو په بدلون سره هم دوام پیدا کړ.

USAID د اشـغال پر مهال په ګڼو برخو کـې د پراخه لاسـه پیسـې مصرفولې او پـه ځینو مـواردو کې یې داسـې پروژې هم تمویل کـړې چې سراسـر د افغاني او اسـلامي ارزښـتونو سـره په ټکر کې وې، چـې ښـه بېلګـه یې د امـن خونو (Shelters) پـروژه وه چـې په ۲۰۰۳ زکال پـه اوږدو کـې د یـادې ادارې او نورو بهرنیو سـازمانونو په مالي مرسـته او د ښـځو چارو وزارت او بشري حقونو کمېسـیون په همغږۍ د هېواد په پلازمېنه کابـل او یو شـمېر ولایتونو کـې عملي کېده. د ټول هېواد پـه کچه کابو ۲۰ امن خونـو فعالیت درلود او په هغو کې ۹۰۰ تنه هغه ښځې او نجونې ساتل کېدې چې لـه خپلو کورونو څخه به تښـتېدلې وې. دغه امـن خونې په اصل کې د اسـلامي شریعت پر وړاندې د ښځو د بغاوت لپاره پناه ځای او د فحشاء مرکزونه وو .د کابل ادارې د عدلیې پخوانـي وزیر حبیب‌الله غالب په ۱۳۹۱کال کې د مشـرانو جرګې یـو غونډې ته د خبرو پرمهال اعتراف وکړ چې امن‌خونې د فحشـاء او اخلاقي فساد مرکزونه دي چې باید وتړل شي.

بله ښـه بېلګه یې د پروموټ په نوم پروژه وه چـې د ۱۳۹۳کال د لـړم پـه ۱۸مه د امریکا پرمختیايي ادارې د ۲۵۰ میلیونو امریکایـي ډالرو په مالي مرسـته د کابل ادارې د مشـر محمد اشرف غني، د هغه مېرمن رولاغني او د امریکا سـفیر جیمز کانینګهام لەخوا د یو لړ مراسـمو په ترڅ کې پرانیستل شوه، چې هدف یې د هېواد په پنځـو ولایتونو( کابـل، بلخ، هرات، کندهـار او ننګرهار) کې ۷۵زره ښـځو ته چـې عمرونه یې بایـد ۱۸ ــ ۳۰ کاله وای، د سیاسـت، اقتصـاد، مدني ټولنې او مشـارکت برخو کې ورتیا ورکونه وه له دې سـربېره د دغې پـروژې د پنځه کلن تطبیقي پلان پر بنسټ په افغانستان کې د جنین سـقط د قانوني کېدو له هڅو څخه هم یادونه شوې وه.

که څـه هـم د پـروژې د پیـل پرمهال تبلیغات داسـې وو چې ګواکي دغه پروژه د محمد اشـرف غني مېرمن رولاغني په نوښـت پیل شـوې او رسـنیو هم په دې برخه کې پـراخ تبلیغات کول چې ګواکي دا بـه د افغان مېرمنو پـه ژوند کې مثبت بدلون راولي. خو د افغانسـتان بیارغاونې په برخه کـې د امریکا ځانګړي پلټوونکي دفتـر یـا سـیګار د ۲۰۱۸کال د اکتوبر څلورمـې نېټـې ریپورټ په دغـه پروژه کې له پراخ مالي فسـاد څخه پرده پورته کړه او ویې ویل چې پـه دې برخه کې د امریکایـي مالیه‌ورکوونکو پـه میلیونونو ډالر پیسې ضایع شوي دي.

د یادونې وړه ده چې د امریکا پرمختیايي مرستو ادارې په افغانستان ځینې بنسټیزي او اغېزناکې پروژې هم پلي کړې.

په ټوله کـې د امریکا پـر مختیايي اداره د اشـغال پـر مهال د بشـري مرسـتو(د خوراکي توکو، روغتیا، بې ځایه شـویو، زلزله‌ځپلو او وچکالـۍ ځپلو)،تعلیم، د ښځو پیاوړتیا پروګرام، اقتصادي پراختیا، زېربنـا، زراعت، حکومتـدارۍ او ډیمو کراسـۍ په برخو کې فعاله وه. د ا.ا.ا. په راتلو سـره پورته هغه موارد چې د افغاني عنعناتو او شـریعت سـره په ټکر کې ول منع کړل شوي.

لنډه دا چې پر رشـوت او جبـر باندې د نفوذ د لومړنیو وسیلو په توګه تکیه د دوام وړ نه ده او په ډېرېدونکې توګه بې اغیزې ده. د USAID شـالید د هېوادونـو لپاره دا درس وړانـدې کوي چـې خپل بهرني سیاسـتونه د متقابـل احترام او رښـتینې همکارۍ پر بنسټ تدوین کړي.

پـه USAID کـې د ټرمـپ ادارې اصلاحات بـه ممکن د نورو پـه کورنیو چارو کې د امریـکا د مداخلې تمایلات په بنسـټیز ډول بدل نه‌کـړي خو د خپلې بهرنۍ سیاسـي دستګاه د زیانونو په به اړه یو نظر وړاندې کولی شي.

# ۳۶۰خـــــبرې

**اوولسمه برخه / امین وردګ**

**شهوت**

۸۱ یمـه خبـره- شـهوت فقط مهـار او نظارت غـواړي؛ ځکه چـې هغه پوهول کېږي نـه، بلکـې تکول کېږي! شـهوت قانون نهٔ پېژني، بلکې نسـبي قانوني لاره بهٔ ورته پیدا کوئ، شـهوت ته قسمونه مه ورکوئ، وعدې مه ترې اخلئ او پهٔ خوږو يې مه نازېږئ، بلکـې کلک بریدونه ورته کېږدئ! له شـهوت څخه پر وعدو وفا مه غواړئ، ځکه چې هغه سرکشـه او خائن دی، هغه عهـد او وفا نهٔ پېژني، ځکه چې هغه دین نهٔ لري، امانت مه ورته سـپارئ، ځکه چې ایمان نهٔ لري او کهٔ تاسو اعتماد پرې کوئ نو احمقان يئ! شـهوت حتی د خدای کور هم نهٔ پېژني، فقط هر ځای بهٔ پام ورسـره کوئ ځکه چې د عقل دښمن دی، نو ممکن له سترو مشکلو سره مو مخ کړي.

**تفاوتونه**

۸۲ یمـه خبـره- زما دا خبـره دې فقط پوهان ولولي! لکه څرنګه مو چې سیرتونه او صورتونه سـره متفاوت دي، داسـې مو حواس او خواص هم ژور توپیر سره لري ځکـه خو چې کوم رنـګ زهٔ وینم هغه تهٔ نهٔ وینې او هغه چـې تهٔ يې وینې، هغه بیا زهٔ نهٔ وینـم؛ یانې ما او تا فقط یو نسـبي توافق سـره کړی چې د تور پهٔ نوم یو رنګ پېژنو او د سـپین پهٔ نوم بل، له همدې امله زیاتره وخت په کې اشـتباه کېږو هم! ځکه خو ځینې کسـان راته وایـي چې دا رنګ سـپین نه بلکې تور دی، نو موږ یې له هغهٔ وروسـته بیا د تور پهٔ نوم یادوو، کهٔ څهٔ هم چـې همغه رنګ بهٔ سـپین وي خو موږ بهٔ يې تور بولو.

**دری تېر ایستونکي شیان**

۸۳ یمـه خبـره- هغه دری شـیان چې انسـان له لارې باسـي دلتـه د (صحت، ثروت او قدرت) پهٔ نومونو سـره یادېږي؛ صحت يې مسـتوي، ثروت يې بې رحمه کوي او قدرت يې لېوني کوي.

**عیب ښوونه**

۸۴ یمه خبره- هر سړی دا وایي چې ماته مې څوک عیب را ښـیي همغه مې دوست دی، خو فکر يې نهٔ دی چې دروغ وایي.

**محتاج او مستغني**

۸۵ یمـه خبره- کهٔ چېرې انسـانان یو بل ته نـهٔ محتاجېدلی نو سـره پېژندل بهٔ يې هـم نه، ځکه چـې زیاتره خلـک اړیکې د احتیـاج له امله پالي نهٔ د اسـتغنا او کهٔ تاسو دا خبره نهٔ راسره منئ نو دا راته ووایئ چـې ولې اړیکې تل د محتاج کس له خوا نیول کېږي نهٔ د مستغني؟

## آغاز کمپاین نهال شانی به پیشواز سال ۱۴۰۴ ...

غرس نهال صدقه جاریه است، با افزایش تحقیقات علمی حقایق اشیا برای انسان‌ها هویدا می‌شود که یک درخت به چندین تن اکسیجن می‌دهد، هوا را پاکیزه، محیط را سالم، امراض را از بین برده، آب‌های زیر زمین را تقویت، آب و خاک را جذب، جلو تخریبات و تغییر اقلیم را می گیرد و تأکید ورزید که با توجه به جد و جهد تمام بزرگان امارت اسلامی ۱۴۰ میلیون افغانی در جهت منابع طبیعی، جنگلات، علفچرها و ساحات حفاظت شده اختصاص داده شده بود که هزاران هکتار زمین در سراسر کشور بذر پسته در کوها و دشت ها، ۴۶ هزار هکتار زمین علف چر در سطح کشور احیا شده، ۱۱۳ هزار هکتار زمین بذر تخم نبات هنگ کشت شده و به هزاران تن زمینه کار نیز مساعد شده است و اکنون در سراسر کشور ۱۶ میلیون نهال برای توزیع داریم، وزارت زراعت یک اداره خدمتی است که ۵۶۰ میلیون عواید نیز بدست آمده است.

به همین ترتیب مولوی سعید احمد شهید خیل معین وزارت امربالمعروف و نهی عن المنکر سمع شکایات، مولوی باز محمد فیضان معین آبیاری و منابع طبیعی و کفیل وزارت زراعت، آبیاری و مالداری، مولوی مخدوم عبدالسلام سعادت معاون والی ولایت پکتیا، مولوی صدراعظم عثمانی معین زراعت و آبیاری و ملا آغاجان حاجی آخند معین مالی و اداری وزارت زراعت، آبیاری و مالداری، خال محمد رئیس اتاق تولیدات زراعتی و مالداری و حامد صافی رئیس میراث ها و منابع طبیعی اداره ملی محیط زیست در پیوند به اهمیت و فواید غرس نهال در خصوص تولید اکسیجن، از بین بردن مضرات گازات و نقش آن در محیط زیست و سرسبزی کشور از دیدگاه کلام الهی و احادیث نبی کریم (ص) صحبت های مفصلی را انجام داده بیان داشتند: «غرس نهال صدقه جاریه است که اجر دارین دارد و ایجاب می نماید که همگان در راستای این کار خیر جد و جهد نموده و با غرس نهال وجیبه ایمانی و وجدانی شان را در قبال یک افغانستان سرسبز و شگوفا ادا سازند.

این درحالیست که کمپاین نهال شانی همه ساله به منظور محیط زیست سالم و سرسبز در سرتاسر کشور از سوی مسئولین امور در تبانی با شرکای کاری شان آغاز می شود.

**قیس قادری**

## د غنیمت په وسلو له دین، هېواد...

له بله پلوه، د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت ویاند عبدالقهار بلخي د واشنګټن دې غوښتنې ته په ځواب کې ویلي و چې افغانستان کې له امریکایي ځواکونو پاتې تجهیزات په اسلامي امارت پورې اړه لري.

## تېره میاشت شاوخوا ۳ زره کورنی...

په ورته وخت کې په پاکستان کې یو شمېر افغان کډوال د پولیسو له پرله پسې ناوړه چلند او جبري شړلو شکایت کوي

## بازدید از اداره تحقیقاتی و نشراتی...

آقای متقی همچنان با قدردانی از فعالیت‌های موثر اداره تحقیقاتی و نشراتی عروج آنرا در راستای نهادینه ساختن ارزش های فرهنگی موثر عنوان نموده و نیز آنرا از نیازمندی‌های اساسی جامعه خوانده است.

از سوی دیگر مسئولان در اداره تحقیقاتی و نشراتی عروج از همکاری های ریاست اطلاعات و فرهنگ ولایت هرات قدردانی نموده و تاکید نمودند که همچنان به فعالیت‌های علمی و فرهنگی خویش ادامه خواهند داد.

اداره تحقیقاتی و نشراتی عروج از چند سال بدین‌سو در بخش‌های علمی _فرهنگی تلاش نموده است و با برگزاری سمینارها، ورکشاپ‌ها، مسابقات کتاب خوانی و برنامه مختلف فرهنگی دیگر از اقشار مختلف از جمله استادان و شاگردان و پوهنتون ها و مکاتب و نیز بخش مختلف اکادمیک حمایت نموده است.

## وزارت زراعت امسال ۱۶ میلیون اصله ...

به گفته رییس منابع طبیعی وزارت زراعت، آبیاری و مالداری، این وزارت طرحی را در راستای نهال‌شانی برای دوسال آینده در کشور روی دست گرفته که ۲۶۹ میلیون افغانی هزینه نیاز دارد.

به گفته آقای خلیل کریم، وزارت زراعت، آبیاری و مالداری در بیش از سه سال گذشته ۵۶۰ میلیون افغانی از ناحیه جنگلات و جنگل‌داری در کشور عواید جمع‌آوری کرده است.

وزارت زراعت، آبیاری و مالداری کشور با نزدیک شدن به فصل بهار ۱۴۰۴ کمپاین نهال‌شانی را به پیشواز این فصل افتتاح کرد.

این کمپاین که تحت عنوان «نهال امروز؛ رفاه آینده» آغاز شده است، در مراسم افتتاح آن شماری از مقامات ارشد امارت اسلامی اشتراک کرده‌اند.

## تېره میاشت ۲۷۰ زره برښنایي...

له بل لوري په یاده میاشت کې د ټول هېواد په کچه څه‌باندې ۱۰ زره او ۵۰۰ نورو کسانو ته د برېښنایي پېژندپاڼو له وېش وروسته چوپړونه هم وراندې شوي دي.

د احصایې او معلوماتو ملي اداره ژمنه کړې چې د ټول هېواد په کچه به خپل چوپړونه پراخوي.

## آفتاب به دو انگشت پنهان...

خسارات آن بیش از یک میلیارد دالر تخمین گردید و۲۹ نفر نیز کشته به جا گذاشت و رسانه‌ها هم به نقل از مقامات این شهر، گفتند که بازسازی تکزاس سال‌ها را در بر خواهد گرفت.

پس این زور گویی و بی‌عدالتی رژیم صهیونیستی و حامیان بین‌المللی اش تا چه زمانی ادامه خواهد داشت.

هرچند که دونالد ترامپ از طرح خود مبنی بر کوچانیدن اجباری فلسطینیان از غزه ظاهراً عقب نشینی کرد و گفته که این طرح تحمیلی نیست، اما حقیقت اینست که مقاومت و جان‌بازی مجاهدین فلسطین در نوار غزه، هیچگاهی از نظر دوستان و دشمنان فراموش شدنی نیست و آفتاب نیز به دو انگشت پنهان نخواهد گردید.

پس باید کشورهایی که در توافق آتش بس میانجیگری کردند، حضور و مقاومت مردم فلسطین را نباید نادیده بگیرند، بلکه قاطعانه از حق مردم فلسطین و جانبازان غزه حمایت کنند و بگذارند تا فلسطینیان خود اداره غزه و بازسازی آن‌را به عهده بگیرند و فلسطین مستقل و آزاد را به رسمیت بشناسند.

## د عامې روغتیا وزارت ۱۲۹ بستونه...

مولوي محمد حنان حقاني ویلي، چې له ټولو ادارو غواړي له دوی سره دې برخه کې همکاري وکړي څو دندې اهل کسانو ته وسپارل شي.

نوموړي زیاته کړې چې د برېښنایي ازموینې له اخیستو یې موخه ازموینو کې روڼوالی دی.

## گسترش همکاری‌های بانکی میان...

او همچنان تأکید کرده که بانک مرکزی افغانستان متعهد است تا با تمامی کشورهای جهان روابط بانکی داشته باشد.

در همین حال، رئیس بانک مرکزی ازبیکستان نیز با تأکید بر اهمیت روابط بانکداری در رشد تجارت از جانب کشورش به هیئت امارت اسلامی اطمینان داده است.

گفتنی‌است که رئیس کل بانک مرکزی نیز در ترکیب هیئت بلندپایه امارت اسلامی به کشور ازبیکستان سفر کرده است.

## د ناسالمو خوړو د باکیفیته کولو لپاره...

به یې دغو متشبثینو( بولاني، پکوړې، ځیګر... پخوونکو) ته ځانګړي ځایونه برابر شي، خواړه به یې با کیفیته شي او په منظم شکل به وېشل کېږي. دغه وازرت زیاتوي چې ناسالم خواړه د مختلفو ناروغیو سبب ګرځي او د هر عمر لرونکي وګړي اغېزمنوي.

موسی خان حاذق چې کابل ښار کې ژوند کوي، له امارتي ورځپاڼو سره یې په خبرو کې ویلي چې دغو ناپاکو خوړو یې روغتیا زیانمنه کړې او ډاکټرانو ورته توصیه کړې، چې له ښاري خوړو دې ډډه وکړي. نوموړی له حکومت څخه په یاده برخه کې د ځانګړې پاملرنې غوښتنه کوي او دغه پخوونکو څخه هم غواړي تر څو د غوړیو په استعمال کې احتیاط وکړي او غوړي دې د هرو خوړو لپاره یو ځل وکاروي.

د عامې روغتیا وزارت ویاند شرافت زمان امارتي ورځپاڼو ته په یو استول شوي پیغام کې دغه ستونزه نړیواله بللې: لکه څرنګه چې تاسې ته غوره معلومه ده، د خوړو د خوندیتوب مسئله یوازې د افغانستان په سطحه نه بلکې د نړۍ په سطحه یوه جدي ستونزه ده. ښاغلی زمان وایي چې دغه وزارت د دې ستونزې د مخنیوي لپاره ځانګړې ریاست لري او دغو متشبثینو ته یې په ځلونو د خوندي خوړو ورکشاپونه دایر کړي،دا چې د کابل ښار کې ناپاکه خواړه په ځانګړي توګه بولاني، پکوړې، برګر... د فست فوډ خوراکي توکو په جمله کې راځي او د دې د کنټرول او کیفیت په موخه د خوړو او درملو معینیت اړوند، د خوړو د خوندیتوب عمومي ریاست یو لړ اقدامات ترسره کړي او دې متشبثینو ته بولاني او پکوړو پخونکو ته یې د خوړو د مصئونیت او کیفیت په موخه د عامه پوهاوي ورکشاپونه او ترینینګونه دایر کړي او هغوی ته یې کیټونه توزیع کړي دي.

نوموړی د دغه خوړو د ناروغیو په اړه هم وایي: د ناسالم او بې کیفیته خوړو ستونزه چې د جامعې ټول قشرونه (کوچني ماشومان، ځوانان او د ډېر عمرلرونکي) کسان یې تر خپل تاثیر لاندې راوستي او د مختلف النوع مزمنو او اوږد مهاله جدي روغتیایي ستونزو باعث شوي دي؛ د هغې له جملې څخه ماشومانو ته د غیر مصئون خوړو استفاده کولای شي د نس ناستي، حساسیت، هضمي سیستم، د غاښونو خرابوالی او اوږد مهاله ناروغیو لکه کاذب چاغوالی، د قد ټیټوالی او نورو ناروغیو باعث شي.

**تاج محمد بهار**

## شاوخوا ۲۰ مجاهدین له توپچي...

د مجاهدینو لپاره دا ډول زده کړې مسلکي او ارزښتناکه بللي او مجاهدینو ته یې سپارښتنه کړې چې ورسپارل شویو دندو کې پوره مهارت او پوهه ترلاسه کړي.

ویل کیږي چې له همدې لوا تر دې دمخه هم په توپچي برخه کې لسګونه تنه مجاهدین فارغ شوي دي.

## بازداشت ۸ تن در پیوند به قاچاق...

آقای نبی زاده همچنان علاوه کرده است که دوسیه‌های مطنونین بعد از ترتیب به ارگانهای عدلی و قضایی ارسال خواهد گردید.

این اقدامات در حالی صورت گرفته است که چندی قبل عالیقدر امیرالمومنین "حفظه الله" فرمانی را صادر کرده اند که در آن قاچاق انسانی ممنوع شده است

# افغان اعلانات

### اعلان داوطلبی

موضوع : در مورد اعلان داوطلبی تدارک (۲) قلم تیل(دیزل و پطرول) مورد ضرورت قطعات و جزوتامهای مرکزی و ولایتی اداره تنظیم امور زندانها از بابت سال مالی ١٤٠٤.

اداره تنظیم امورزندانها از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی باز داخلی تدارک(۲) قلم تیل (دیزل و پطرول ) مورد ضرورت قطعات و جزوتامهای مرکزی و ولایتی اداره تنظیم امور زندانها از برای سال مالی ١٤٠٤ برای زون های درج جدول ذیل این اداره اشتراک نموده شرطنامه را از شعبه آمریت قراردادها، ریاست تدارکات اداره تنظیم امورزندانها ، واقع ناحیه ۱۲ شهر کابل ، گارنیزیون مرکزی اداره تنظیم امورزندانها بدست آورده و آفر خویش را مطابق به شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طورسربسته ، بعد از نشراعلان الی ۲۱ روز تقویمی (راس ساعت معینه مندرج شرطنامه) به ریاست تدارکات این اداره ارایه نمایند آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی‌باشد.

| شماره | ( تدارک (۲) قلم تیل (دیزل و پطرول | |
|---|---|---|
| | (لات ها)زون | (تضمین آفر (افغانی |
| ١ | زون جزوتام های مرکزی | ١,٥٥٠,٠٠٠ |
| ٢ | زون کندهار | ٢٣٠,٠٠٠ |
| ٣ | زون هلمند | ٢٠٠,٠٠٠ |
| ٤ | زون هرات | ٢٤٠,٠٠٠ |
| ٥ | زون ننگرهار | ٢٢٠,٠٠٠ |
| ٦ | زون بلخ | ١٠٥,٠٠٠ |
| [redacted] | | |
| ٨ | (زون غزنی (ارزگان ، غزنی و زابل | ٣٥٥,٠٠٠ |
| ٩ | ( زون بدخشان (بدخشان و تخار | ٣٢٥,٠٠٠ |
| ١٠ | ( زون کندز(کندز و بغلان | ٣٠٠,٠٠٠ |
| ١١ | (زون لغمان (لغمان،کنرها و نورستان | ٤٠٠,٠٠٠ |
| ١٢ | (زون پروان(پروان، کاپیسا و پنجشیر | ٢٧٠,٠٠٠ |
| ١٣ | ( زون پکتیا (پکتیا و لوگر | ٢٥٠,٠٠٠ |
| ١٤ | (زون خوست (خوست و پکتیکا | ٢٦٠,٠٠٠ |
| ١٥ | (زون جوزجان (جوزجان، سمنگان ،سرپل | ٢٥٠,٠٠٠ |
| ١٦ | (زون بامیان (بامیان، دایکندی و میدان وردک | ٢٣٥,٠٠٠ |
| ١٧ | (زون غور (غور،بادغیس و فاریاب | ٢٢٥,٠٠٠ |
| ١٨ | (زون نیمروز (نیمروز و فراه | ٢٦٠,٠٠٠ |

تضمین آفر به شکل تضمین بانکی (بانک گرنتی/پول نقد ) مطابق مقدار مبلغ مندرج جدول فوق برای هرلات مربوطه بوده و جلسه آفرگشایی پروژه های متذکره با حضور داشت هیئت آفرگشایی و نمایندگان داوطلبان در ریاست تدارکات اداره تنظیم امور زندانها دایر می گردد.

### اطلاعیه فسخ جواز رهنمای معاملات

اسامی محترم نصیر احمد فرزند احمد خان ولدیت سمیع خان دارنده جواز نمبر ( ۱۰۶۲) مورخ ۱۴۰۱/۱۲/۲۳ متصدی رهنمای معاملات ( پسران حاجی احمد خان ) واقع ناحیه ( ۱۶) شاروالی کابل خواهان فسخ جواز خویش گردیده که بعد از نشر اعلان رهنمای مذکور فاقد اعتبار قانونی بوده هر گاه ادارات دولتی و اشخاص انفرادی بالای موصوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشته باشند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاست عمومی انسجام ، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۴۴۸

### اعلان داوطلبی

ریاست عمومی دفتر مقام ریاست الوزراء از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت مینماید تا در پروسهٔ داوطلبی پروژه های ذیل اشتراک و آفر های سربستهٔ خویش را مطابق شرایط شرطنامه از تاریخ نشر اعلان الی ضرب الاجل تسلیمی آفر ها ارایه نمایند:

| شماره | نام پروژه | نمبر تشخیصیه | مقدار تضمین آفر (گرنتی بانکی به افغانی) | ضرب الاجل تسلیمی آفر ها |
|---|---|---|---|---|
| ١ | پروژۀ تدارک گوشت باب ضرورت ریاست خدمات | OCS/1404/NCB/G-1145 | ٣٢٠,٠٠٠ | ١٤٠٣/١٢/٢٥ - ساعت ١٠:٣٠ قبل از ظهر |
| ٢ | پروژۀ تدارک مواد تنظیفی ضرورت ریاست خدمات | OCS/1404/NCB/G-1152 | ٣١٠,٠٠٠ | ١٤٠٣/١٢/٢٦ - ساعت ١٠:٣٠ قبل از ظهر |

کاپی شرطنامهٔ مربوط را در بدل مبلغ (۵۰۰) پنج صد افغانی از آدرس ذیل به دست آورده می توانند:

– ساختمان روابط عامه واقع دروازهٔ ورودی ادارهٔ امور.

به منظور حصول معلومات بیشتر به آدرس های ذیل به تماس شوند:

– شمارهٔ دفتر ٠٢٠٢١٤٢١٠٢

– شماره وتسپ شخص مسئول: ٠٧٨٤٥٩٤٠٢٠

آدرس بازگشایی آفرها: ارگ، جوار تعمیر اداری، منزل سوم، ریاست تدارکات.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly . Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 24 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 691

# آغاز کمپاین نهال شانی به پیشواز سال ۱۴۰۴ با شعار «نهال امروز، رفاه آینده» در کابل



**شریعت:** وزارت زراعت، آبیاری و مالداری کمپاین نهال‌شانی را به پیشواز سال ۱۴۰۴ با شعار «نهال امروز، رفاه آینده» طی محفلی ویژه با حضور مقامات عالی رتبه امارت اسلامی و اشتراک شماری کثیری از علما، مجاهدین، بزرگان و خبرنگاران در بادام‌باغ کابل با غرس نهال آغاز کرد.

در ابتدا مولوی عبدالاحد خلیل رئیس عمومی منابع طبیعی وزارت زراعت، آبیاری و مالداری پیرامون اهمیت غرس نهال و چگونگی فعالیت آن اداره معلومات داده افزود: «... ص۳

## د عامې روغتیا وزارت ۱۲۹ بستونه مسلکي کادرونو ته سپارل کیږي

د عامې روغتیا وزارت مسئولینو په یوه خبري غونډه کې ویلي چې ۱۲۹ بستونو ته به برېښنايي ازموینې واخلي او د یادې برخې مسلکي کادرونه به پکې وګومارل شي.

بل پلو، د اصلاحاتو او ملکي خدمتونو د تعيناتو رييس... ۳مخ




## لغمان کې سلګونو کورنیو ته روغتیايي چوپړونه چمتو شول

د لغمان ولایت په الیشنګ ولسوالۍ کې د قندلي روغتیايي مرکز، چې څه موده وړاندې د ځینو ستونزو له امله تړل شوی و، بېرته پرانیستل شو.

د لغمان د عامې روغتیا ریاست مسئولین وايي، چې دا مرکز د الیشنګ ولسوالۍ اړوند د کهنه پال درې په لرې پرته سیمه کې فعال شوی، چې له مخې يې ۹۴۳ کورنیو ته روغتیايي خدمات وړاندې کېږي.

یاد مرکز د "سرف افغانستان" موسسې له لوري تمویل کېږي او پکې ۱۴ تنه نارینه او ښځینه ډاکټران د مور او ماشوم ساتنې، واکسین، OPD، لابراتوار او یو شمېر نورو برخو کې فعالیت لري.



د یادونې وړ ده، چې قندلي کلی د الیشنګ ولسوالۍ اړوند د کهنه پال درې په غرنيزه سیمه کې موقعیت لري، چې د ولایت له مرکز مهترلام څخه شاوخوا ۱۰۰ کیلومتره فاصله لري.

## تېره میاشت شاوخوا ۳ زره کورنۍ له ګاونډیو هېوادونو راستنې شوي

د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت شمېرې ښيي چې په تېره یوه میاشت کې ۳۱۶۰ کورنۍ چې څه باندې ۱۴ زره کسان کیږي، هېواد ته راستانه شوې دي. د کډوالو او راستنیدونکو چارو وزارت وياند ويلي، چې له ایرانه څه باندې ۱۰۶۰۰، له پاکستانه ۳۳۰۰ او له ترکيې نږدې ۱۵۰ کسان هېواد ته راستانه شوي دي. ۳مخ



## کجکي ولسوالۍ کې د اړمنو لاسنیوی شوی



د هلمند د کلیو بیارغونې او پراختیا ریاست په هڅو د خوړو نړیوال سازمان په مالي همکارۍ او د بشري مرستو خیریه مؤسسې په تخنیکي همکارۍ کجکي ولسوالۍ کې د ۲۳۳۷ اړمنو کورنیو سره د خوراکي توکو مرسته شوې ده.

دې مرستو کې هرې کورنۍ ته ۵۰ کیلو اوړه، ۴.۵ کیلو غوړي، ۶.۲۵ کیلو دال، ۰.۵ کیلو مالګه، ۳ کیلو د تقویې خوراکي توکي او ۱.۵ کیلو د ماشومانو لپاره د خوارځواکۍ توکي شامل دي.

یاده دې شي چې تر دې دمخه هم ددې ولایت په بېلابېلو سیمو کې د ولایتي ادارې په اسانچارۍ د ګڼو اړمنو لاسنیوی شوی.

## بازداشت ۸ تن در پیوند به قاچاق انسان توسط نیروهای امنیتی هرات

غلام نبی نبی‌زاده سخنگوی قوماندانی امنیه هرات در گفت‌وگو با خبرنگار آژانس باختر می‌گوید که پرسونل آمریت قاچاق انسان مدیریت مبارزه باجرایم جنایی قوماندانی امنیه این ولایت طی چندین عملیات کشفی هشت تن را در پیوند به قاچاق انسان از مربوطات این ولایت بازداشت نمودند. ص۳



## شاوخوا ۲۰ مجاهدین له توپچي، نظري او علمي زده کړو فارغ شوي



د ۲۱۵ عزم قول اردو مطبوعاتي دفتر په یوه خبر کې له اوومې سرحدي لوا څخه د ۲۲ تنو د فراغت خبر ورکړی دی.

ویل کیږي چې یادو ۲۲ مجاهدینو د ډي‌سي توپ په برخه کې یو میاشتنی عملي او نظري زده کړې پای ته رسولې.

د یادو مجاهدینو د فراغت د مراسمو پرمهال د اوومې سرحدي محمدي لواء درستیزوال محمد مولوي صاحب ... ۳مخ




## حمله موشکی نیروهای حوثی به طیارات جنگی امریکا



مقام‌های امریکایی تایید کرده‌اند که نیروهای حوثی به موشک‌های زمین به هوا طیاره جنگی و طیاره بدون سرنشین این کشور را هدف حمله قرار داده‌اند.

به گفته این دو مقام امریکایی، حملات یادشده نشان می‌دهد که نیروهای حوثی یمن از نظر نظامی توانایی و قابلیت‌های پیشرفته‌ای حاصل کرده‌اند.

در این گزارش به نقل از این دو مقام امریکا آمده که موشک‌های شلیک‌شده از سوی نیروهای حوثی به طیارات این کشور اصابت نکرده است.

اعتراف مقام‌های امریکا نسبت به افزایش توانایی‌های نظامی نیروهای حوثی در حالی صورت گرفته که رهبر این نیروها اخیراً هشدار داد در صورت حمله مجدد رژیم صهیونیستی اسراییل و امریکا به نوار غزه، این کشور دست‌روی‌دست نخواهد نشست.

پیش از این نیز نیروهای حوثی به طیارات و کشتی‌های جنگی امریکا در دریای سرخ، حمله کرده‌اند.

## اسراییلو بیا دیرغملو فلسطینیانو د خوشې کولو لړۍ درولې

د اسراییلو لومړي وزیر، بنیامین نتانیاهو د هغو ۶۰۲ فلسطینیانو خوشې کول ځنډولي چې ټاکل شوې وه ورمه ورځ شنبه فلسطین ته ستانه شوي وای.

رویترز خبري اژانس د بنیامین نتانیاهو د دفتر په حواله راپور ورکړی چې حماس غورځنګ د اسراییلي یرغمل شویو کسانو د خوشې کولو پر مهال د اسراییلو پر ضد د تبلیغاتو مراسم ترسره کړي، او په وینا يې چې فلسطیني بندیان به تر هغه وخته خوشې نشي چې د اسراییلي یرغمل شویو کسانو سره دا ډول چلند پای ته نه وي رسېدلی.

بل پلو، حماس غورځنګ صهیونېست رژیم له اوربنده پر سرغړونې تورن کړی دی.

ټاکل شوې وه چې اسراییلو د حماس له خوا د شپږو اسراییلي یرغمل شویو په بدل کې ۶۰۲ فلسطینیان خوشې شوي وای.

## پاپ فرانسس د مرګ پر بستر پروت دی

د واتیکان رسنیو اعلان کړی چې د نړۍ د کاتولیک عیسویانو د مشر وضعیت ښه نه دی او لا هم د مرګ پر بستر پروت دی.

واتیکان پرون اعلان کړی چې د نړۍ د کاتولیک عیسویانو د مشر، پاپ فرانسس روغتیایي وضعیت ناوړه دی. ویل کیږي چې نوموړی له ساه لنډۍ کړیږي او وینې ته هم اړتیا لري.

پاپ فرانسس ۸۸ کاله عمر لري چې له ډېر وخت راهیسې له ناروغیو کړیږي.

## ټرمپ؛ که پیسې نه وي، کانونه راکړئ

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د محافظه کارانو یوې غونډې ته د وینا پر مهال د اوکراین په اړه ویلي چې د امریکا له خوا مصرف شوې پیسې دې بېرته ورکړل شي.

نوموړي په خپلو خبرو کې ویلي چې اروپا ایله له اوکراین سره ۱۰۰ میلیارده خو امریکا په یوازې ځان اوکراین ته ۳۵۰ میلیارده ډالره ورکړي دي.

نوموړي په خپلو خبرو کې د جوبایډن اداره ناکامه او نوموړی يې احمق بللی دی.

ډونالډ ټرمپ په داسې حال کې یو ځل بیا له اوکراینه د خپلو لګول شویو پیسو غوښتنه کړې چې څو ورځې وړاندې د کییف له ګډون پرته سعودي عربستان کې د مذاکراتو په تړاو خبرې اترې پیل شوي وې.